المملكة العربية السعودية
521
وزارة الشؤون الإسلامية والدعوة والإرشاد

# دنیکمرغه ژوند لپاره غوره وسیلي



ليکنه

شیخ / عبدالرحمن بن ناصر السعدي

دچاپولو او خپرولو اداره
داسلامي چارو او دعوت او لارښوونې وزارت
سعودي عربستان

وكالة المطبوعات والبحث العلمي
uspr@moia.gov.sa

داسلامي چارو او دعوت و ارشاد وزارت
له نشراتو څخه

# د نیکمرغه ژوند لپاره

# غوره وسیلې

**لیکنه**

**شیخ عبدالرحمن بن ناصر السعدي**

**ژباړنه**

**عبدالنافع زُلال**

سرپرسته اداره
دمطبوعاتو او نشراتو ریاست په وزارت کې
۱٤۳۹هـ

ⓗ وزارة الشؤون الإسلامية والدعوة والإرشاد ، ١٤٢٣هـ

فهرسة مكتبة الملك فهد الوطنية أثناء النشر

السعدي، عبدالرحمن بن ناصر بن عبدالله، ١٣٠٧هـ

الوسائل المفيدة للحياة السعيدة . / عبدالرحمن بن ناصر بن عبدالله، ١٣٠٧هـ السعدي .- الرياض، ١٤٢٣هـ

٦٤ص ١٢ x ١٧ سم

ردمك : ٢-٤٣٨-٢٩-٩٩٦٠

( النص باللغة البشتو )

١- الوعظ والإرشاد أ - العنوان

ديوي ٢١٣ ١٤٢٣/٥٣١٣

ردمك : ٢-٤٣٨-٢٩-٩٩٦٠

رقم الإيداع: ١٤٢٣/٥٣١٣

الطبعة الرابعة عشر

١٤٣٩ هـ

بسم الله الرحمن الرحيم

## وړاندښت

الحمد لله وحده، والصلاة والسلام على من لا نبي بعده وعلى آله وصحبه أجمعين، ومن اتبعه بإحسان إلى يوم الدين.

أما بعد:

دا مبارکه رساله «دنیکمرغه ژوند لپاره غوره وسیلې» دهغې نیکمرغۍ او سعادت حقیقي معنی او مفهوم بیانوي، کومه چې دهر انسان په ژوند کې دیو عالي هدف په حیث ګڼله کیږي، او دهغې حقیقي مفهوم په باره کې، او دهغې لاس ته راوړلو په اړه*[1] مختلف نظرونه او متعددې رایې شته دي. بعضې خلک پدې نظر دي چې نیکمرغي (سعادت) دپیسو په ټولولو او

(۱) دکومو کلماتو خوا کې چې دستورې (*) علامه وي، دا کلمه دکتاب په اخیر کې دمترادفو کلماتو په لست کې راغلیده، نو دهغې دمترادفې معنی او یا لهجې پیژندلو لپاره دې لست ته مراجعه وشي.(ژباړن)

زیـــاتولو سره لاس ته راځي، او بعضي هغه دجسمونو په صحت او دوطنونو په امن وامان کې ګوري، او بعضي نور هغه دحلال رزق، او ګټور علم لاس ته راوړلو کې ګوري، او بعضي يې په صادق ايمان، نيک عمل، او په هغه باندي استقامت* کولو کې ګوري. خو کيداى شي دا ټول شيان دنيکمرغۍ په مفهوم کې داخل شي، په هغه صورت کې چې هغه دشرعي اصولو* سره موافق وي، ليکن نيکمرغي (په عامه توګه سره) په دوه قسمه ويشل کيږي:

۱- ددنـــيا نيکمرغي، چې موقته او (دانسان) په لنډ او (ژر) بدليدونکى عمر پوري محدوده ده.

۲- دآخـــرت نـــيکمرغي، چـــي دائمـــي او نـــه ختميدونکي او لا محدوده ده.

او (دنيکمرغۍ) دا دواړه (قسمونه) يو بل سره تړلي او لازم وملـــزوم دي، ددنـــياَ نـــيکمرغي او دآخرت نـــيکمرغۍ ســـره بيـــلي ندي، او په دنيا او آخرت کې نيکمرغه ژوند دپرهيزګاره مسلمانانو لپاره دالله په رضا پـــوري تړلى دى، الله ﷻ فرمايي: ﴿مَنْ عَمِلَ صَالِحًا مِّن

ذَكَــرٍ أَوْ أُنثَى وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَلَنُحْيِيَنَّهُ حَيَاةً طَيِّبَةً وَلَنَجْزِيَنَّهُمْ أَجْرَهُم بِأَحْسَنِ مَا كَانُواْ يَعْمَلُونَ﴾ [النحل: ۹۷ آیت]

تــرجمه: څوک چي نیک* عمل وکړي، نر وي او که ښځه، پداسي حال کي چي مومن وي، نو هغه لره به نــیکمرغه ژونــد ور په برخه کړم، او دهغوی اجر او ثواب به دهغوی دټولو نه د ښه اعمالو په اندازه ورکړم.

ای مبارک وروره آیا پوهیږي چي نیکمرغي ټوله څه ته وایي؟ او څنګه لاس ته راځي؟ او بدبختي ټوله څه ته وایي؟ او څنګه ترینه ځان وساتو؟!.

نیکمرغي دالله ﷻ او دهغه دپیغمبر ﷺ په طاعت او پیروي کي نغښتي* ده.

لکــه څــنګه چــي بدبختي ټوله دالله ﷻ او دهغه دپیغمــبر ﷺ په نافرماني کي نغښتي ده، الله ﷻ فرمایي: ﴿وَمَــن يُطِعْ اللَّهَ وَرَسُولَهُ فَقَدْ فَازَ فَوْزًا عَظِيمًا﴾ [الأحزاب: ۷۱ آیت]

تــرجمه: او څوک چي دالله ﷻ او دهغه دپیغمبر اطاعــت کــوي، نو په لویه کامیابي سره کامیابه شوی دی.

او فرمايي: ﴿وَمَن يَعْصِ اللَّهَ وَرَسُولَهُ فَقَدْ ضَلَّ ضَلالاً مُّبِينًا﴾ [الأحزاب: ٣٦ آيت]

ترجمه: او څوک چي دالله ﷻ او دهغه دپيغمبر نافرماني کوي، نو په لويه ګمراهۍ سره (دحق لاري نه) ګمراه شوی دی.

او دا کتاب چي زموږ مخي ته دی «دنيکمرغه ژوند لاس ته راوړلو غوره وسائل» دعلامه شيخ عبد الرحمن بن ناصر السعدي رحمت الله عليه تصنيف* دی، چي په اتو فصلونو باندي شامل دی، او په هغه کي مؤلف (مصنف) دنيکمرغۍ لاس ته راوړلو حقيقي اسباب او وسائل او لاري* دشرعي دلائلو په رڼا کي چي له قرآن او حديث نه اخيستل شوي، بيان کړيدي، تر څو پدي توګه وکولای شي د هغه حقيقي نيکمرغه ژوند تګلاره په ګوته کړي چي هر مسلمان دهغه آرزو* لري، او يوه اسلامي ټولنه دخپل ژوند دتنظيمولو لپاره دهغه په رڼا کي حرکت او چلند وکړي.

او ددي لپاره چي داسلامي چارو، اوقافو، او دعوت وارشاد وزارت وتوانيدلای شي دصحيح

کړنلاري او خلکو ته دداسي وسائلو ښودلو په لاره کي برخه واخلي، نو دا کتاب يې دخپلو ګټورو نشراتو په سلسله کي اختيار کړ، تر څو هغه دمشکلاتو او ربړونو نه ډک ژوند کي دمسلمان لپاره يو لارښود وي.

له الله ﷻ نه سوال کوو چي ومؤلف ته، او هغه چا ته چي دکتاب په چاپولو او نشرولو او ترتيبولو کي مرسته کړيده لوی اجر او ثواب ورپه برخه کړي.

والله الموفق والهادي إلى سواء السبيل، وهو حسبنا ونعم الوكيل، وصلى الله وبارك على نبينا محمد وعلى آله وصحبه أجمعين.

دكتور/ عبد الله بن أحمد الزيد

په وزارت کي دچاپ او نشراتي چارو مسئول

## دمصنف سریزه

الحمد لله الذي له الحمدُ كلُّه، وأشهدُ أن لا إله إلا اللهُ وحدَه لا شريكَ له، وأشهدُ أنّ محمداً عبدُه ورسولُه، صلى اللهُ عليه وعلى آله وأصحابه وسلَّم.

أما بعد:

دزړه راحـــت او خوشحالي او دغمونو او کړاوونو څخـــه لـــیري والی دهر انسان غوښتنه ده، او په همدي سره ښه ژوند لاس ته راځي، او خوشحالي او خوشبختي پري حاصلیږي. چي ددي لپاره دیني، طبیعي، او عملي اسباب شته، چي هغه بیله مومن او مسلمان نه بل چا ته تـــول نشي مهیا* کیدلای، او لدوی نه سوا که نورو ته بعضـــي ددي نه څه حاصل هم شي، چي عاقلان به یي ډیـــر په تکلیف او مشقت سره لاس ته راوړي، خو له ډیرو داسي کړنلارو* او اسبابو نه به محروم وي چي په حال او آینده کي به ډیر زیات ګټور او مفید وي.

خو زه به په دې رساله کي یوازي ددي عالي هدف

او مقصد چې هر څوک ورته درسیدلو کوښښ کوي، هغه اسباب ذکر کړم چې ما ته همدا اوس را پیاد دي.

بعضو خلکو* ته ددې اسبابو نه ډیر اسباب مهیا شوي دي، خوشحاله او نیکمرغه ژوند یې په نصیب شوی دی، او بعضې ترینه محروم شوي، نو ځکه یې تریخ ژوند په برخه شوی دی، او بعضې نور ددې دوو په مینځ کې دي، څومره چې پرې بریالې شوي، په هماغه اندازه یې نیکمرغي په نصیب وي، او یوازې الله ﷻ دهر خیر لاس ته راوړلو او دهر شر دفع کولو توفیق او مدد ورکونکی دی.

## فصل

## دنیکمرغه ژوند لاس ته راوړلو غوره وسائل

۱- لـــدي اســـبابو او وسائلو نه یو غټ او اساسي ســـبب ایمـــان او نیک عمل دی، الله ﷻ فرمایي: ﴿مَنْ عَمِـــلَ صَالِحًا مِّن ذَكَرٍ أَوْ أُنثَى وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَلَنُحْيِيَنَّهُ حَيَاةً طَيِّبَةً وَلَنَجْزِيَنَّهُمْ أَجْرَهُم بِأَحْسَنِ مَا كَانُواْ يَعْمَلُونَ﴾ [النحل: ۹۷ آیت]

تـــرجمه: څوک چې نیک* عمل وکړي، نر وي او که ښځه، پداسي حال کي چې مومن وي، نو هغه لره به نـــیکمرغه ژونـــد ور په برخه کړم، او دهغوی اجر او ثواب به دهغوی دټولو نه دښه اعمالو په اندازه ورکړم.

نو الله ﷻ هغه چا ته چې دایمان او نیک عمل دواړو خاوند وي خبر او وعده ورکړیده چې هغه ته پدي دنیا کي نیکمرغه ژوند ور په برخه کړي، او هم به پدي دنیا او په آخرت کي نیکه جزا او ثواب ورکړي.

او ددي ســـبب واضح دی، ځکه کوم کسان چې

دداسي صحیح ایمان خاوندان وي چې نیک عمل ورسره ملګری وي، او دزړونو او اخلاقو داصلاح، او ددنیا او آخرت دخیر سبب وګرځي، ددوی سره داسي اصول او بنسټونه* وي چې دهغه په رڼا کي کولای شي چې دخوشحالۍ او خوشبختۍ، او دغم او خپګان* او خواشیني داسبابو سره صحیح چلند* وکړي.

کله چې ورته دخوښي او خوشحالي اسباب او وسائل مهیا شي، په هغه راضي وي او شکر یې اداء کوي، او هغه په ګټورو لارو کي پکاروي، چې پدي ډول کارولو سره دوی ته په هغه سره خوشحاله کیدو کي، او دهغه ددوامداره پاتي کیدلو په طمع* لرلو سره، او دهغه ثواب ته دامید لرلو په نتیجه کي -چې شکر ګزارو ته ورکول کیږي- داسي لوی او ګټوري* ثمرې او نتائج لاس ته راځي چې ښیګړي او برکتونه یې له هغه ظاهري خوشحالیو نه ډیر اوچت وي کوم چې نومړي نتائج او ثمرې یې مینځ ته راوړي دي.

او كله چې ورته غم او خپگان او خواشيني* راشي، نو دهغه په مقابل كې دخپلې وسعې* په اندازه مقاومت كــوي تــر څو هغه له ځان نه دفع كړي كوم چې دفع كيږي، او دكوم كې چې دتخفيف امكان وي، هغه كې كمـــى او تخفيف راولي، او كوم چې دفع كولاى نشي دهغه په مقابل كې له صبر او حوصلې نه كار اخلي، چې پـــدې ډول ســـره دفـــائده نـــاك مقاومت دتكليفونو دبرداشـــت، او دمخـــتلفو تجربو حاصلولو، او دصبر كولـــو، او دثواب دامېد لرلو له وجهې نه داسې لوى او دخير كارونه او فائده ناكې نتيجې او ثمرې ددوى لاس ته راشي، چې دهغه په لرلو سره ټول تكليفونه له مينځه ځـــي، او په خوشحاليو او نيكو آرزوگانو*، او دالله ﷻ داجـــر او ثواب اميد لرولو سره بدليږي، لكه څنگه چې پيغمـــبر ﷺ دنومړي حالت او كيفيت تعبير په صحيح حديـــث كې داسې بيان كړيدى: «عَجَباً لأمرِ المؤمنِ، إنَّ أمرَه كلَّه خيرٌ، إنْ أصابتْهُ سرّاءُ شكرَ، فكانَ خيراً لهُ، وإنْ

أصـــابتْه ضرّاءُ صبرَ فكانَ خيراً له، وليسَ ذلكَ لأحدٍ إلا للمؤمنِ».

تـــرجمه: دمومن کار د تعجب وړ دی، ټول کارونه یـــې دخیر دي، که خوشحالي ورته ورسیږي، شکر یې اداء کـــوي، نو دا دده لپاره خیر دی، او که تکلیف او مشکل ورته ورسیږي، صبر کوي، نو دا دده لپاره خیر دی، او دا کــــار بیله مومن نه دبل چا لپاره نه دی.[مسلم روایت کړی دی].

نـــو پیغمبر ﷺ ددي خبري بیان وکړ چي دمومن په خوشحالۍ او خواشینۍ دواړو سره دده داعمالو اجر او ثواب او ښیګړي زیاتیږي.

که چیري دوو کسانو ته خیر او یا شر ورسیږي نو تـــه به وګوري چي دوی دهغه په وړاندي عکس العمل ښودلـــو کـــي یو بل سره توپیر لري، او دا توپیر ددوی دایمان او نیک عمل په توپیر پوري اړه لري.

خـــو څوک چي (دایمان او نیک عمل څښتن* وي)

نـــو هغه خیر او شر په شکر او صبر سره استقبالوي، نو ځکه خو ورته خوشحالي حاصلیږي، او غم، خواشیني، تشویش، اندیښني*، او دزړه تنګی او بدبختي ترینه لري کـــیږي، او په نتیجه کي نیکمرغه او سوکاله ژوند پدي دنیا کي ور په برخه کیږي.

او څـــوک چي (دایمان او نیک عمل خاوند نه وي) دخوشـــحالۍ او ښیګړي په لاس ته راوړلو سره تکبر او غـــرور ښکـــاره کوي، نو ځکه خو يې اخلاق منحرف شي، او هم دحیواناتو په څېر دنعمتونو سره په حرص او لوږه چلند کوي، خو سره له هغه نه يې هم زړه مطمئن نـــه وي، بلکـــه دمختلفو جهتونو نه دتشویش سره مخ وي، یـــو دا چـــي دنعمتونو دزوال، او تکلیفونو سره مخـــامخ کیدلو ویره ورسره وي، او بل دا چي انساني نفس هیڅکله حد او اندازه نه پیژني، بلکه همیشه زیاتو نعمـــتونو لاس ته راوړلو ته لیواله وي، چي کیدای شي لاس ته يې راشي او یا را نشي، او که فرضاً لاس ته هم

راشـــي نو بیا هم دپورتنیو اسبابو له وجهې دتشویش نه خالي نه وي، او دتکلیفونو په مقابل کې همیشه ویره او تشویش او شکایت لري، او دا خو لا پرېږده چې کومه بدبختي، او روحي، فکري، او عقلي مرضونه چې ده ته رسـیږي، او کومه ویره چې ورته پیښیږي، او دبدترینو حــالاتو او نــاوړه خیالاتو سره یې مخامخ کوي، او دا ځکــه چې هغه دکوم ثواب او اجر طمع نه لري، او نه ورســره دومــره صـــبر وي چې دا ټول مشکلات او مصیبتونه ور باندې آسانه کړي، او تسلي ورته ورکړي.

او دا ټول حالات په تجربه سره لیدل شوي دي، او کــه تــه چیري دداسې کسانو نه دیوه په باره کې فکر وکړي، او دخلکو حالات پر هغه باندې قیاس کړي، نو وبــه ګوري چې هغه مومن چې دخپل ایمان مطابق عمل کـــوي، دده او دهغه چا په مینځ کې څومره توپیر شته کــوم چـــې دده پـــه شان نه وي، او دا ځکه چې دین همیشه دا توصیه کوي چې دالله په تقسیم باندې، او په

هغـــه مختلفو نعمتونو چې خپلو بنده ګانو ته یې له خپل فضل او کرم نه ورکړي، قناعت وشي.

نو مومن که په مرض او فقر او نورو داسي تکلیفونو ســـره -چې هر انسان ورسره مخ کیږي- مبتلا شي، نو دخـــپل ایمان، او له هغه قناعت او رضائیت نه چې دالله ﷻ پـــه تقسیم باندي یې لري، همیشه یې خوشحاله او مطمئنه ګورې، زړه یې دداسي کار غوښتنه نه کوي چې دده په قسمت کي نه وي، هغه چا ته ګوري چې لده نه پـــه ټیټ حالت کي ژوند کوي، او هغه چا ته نه ګوري چـــي لده نه په ژوند کي ښه وي، او که داسي څوک وګوري چې ټول دنیوي مقصدونه یې حاصل شوي وي، خو بیا هم قناعت نلري، نو دهغه په لیدلو سره یې شاید خوشحالي او اطمینان نور هم زیات شي.

او څوک چې دایمان مطابق عمل نه کوي، کله چې په فقر او غریبی سره مبتلا شي، او یا بعضي دنیوي مقاصد یې پوره نشي، نو بې اندازې خواشینه او غمګینه وي.

یو بل مثال: کله چې انسان ته دویرې او پریشانۍ او ناقرارۍ حالات پیدا شي، نو دصحیح ایمان او ثابت زړه خــاوند به مطمئنه، او دکارونو دتنظیم، او دپیښې شوې پریشانۍ لپاره چاره سنجولو کې به په آرام او قوي اراده ســره فکــر او سوچ او کار کوي، څومره چې دده په وســعه کــې وي، او ځان به ددې واقعې* لپاره چمتو کوي، او پدې ډول سره انسان دآرامۍ احساس کوي او زړه به یې استواره او مطمئن وي.

او څــوک چــې له ایمان نه بې برخې وي، هغه به دمخکینــي مــثال په خلاف وي، کله چې څه ویر او پریشـــانۍ میــنځ ته راشي، نو زړه یې نا قراره شي، او اعصــاب یــې پریشانه شي، او افکار یې ګډوډ، او له ویرې او ډار سره مخامخ شي، او پر ده باندې له بیرون نه ویره، او له داخل نه داسې پریشاني مسلطه شي، چې دهغه له حال نه تعبیر کول ګران دي. او دارنګه خلکو تــه که چیرې هغه طبیعي اسباب مهیا نشي په کوم چې

کافي ځان تمرین کولو ته ضرورت لري، نو توانائي يې ختميږي او اعصاب يې ګډ وډ، او کنټرول يې له لاسه ورکوي، او دا دهغه ايمان دنشتوالي په وجه ده کوم چې انسان ته دصبر کولو توان ورکوي، خصوصاً دپريشانيو او سختو او غمجنو حالاتو په وخت کي.

نـــو صالح او بدکاره، او مومن او کافر که څه هم دواړه داختياري (کسبي) شجاعت په جلبولو، او په هغه غريـــزه کي چې پريشاني او ويره پر انسان باندي آسانه کوي، يو شانته دي، خو مومن دايمان دقوت، صبر او په خـــداى توکـــل کولو، او دثواب اميد لرلو سره خاصه ځانګړتـــيا* لري، چې دده شجاعت نورهم زياتوي، او دپريشانۍ تاثير ور باندي کموي، او مشکلات ورباندي آسانه کوي.

لکـــه چـــي الله ﷻ فرمايي: ﴿إِن تَكُـــونُواْ تَأْلَمُونَ فَإِنَّهُمْ يَأْلَمُونَ كَمَا تَأْلَمونَ وَتَرْجُونَ مِنَ اللّهِ مَا لاَ يَرْجُونَ﴾

[النساء: ۱۰٤ آيت]

ترجمه: که تاسو ته درد رسیږي، نو دوی (کفار) ته هم درد رسیږي، هماغسي چي تاسو ته رسیږي، او (لدي نه علاوه) تاسو له الله نه دهغه (اجر او ثواب) امید لرئ، چي دوی (کفار) یې نلري.

او دالله ﷻ مدد او خاصه مرسته لدوی نه ټولي پریشانۍ او ویري لیري کوي.

الله ﷻ فرمايي: ﴿وَاصْبِرُوا إِنَّ اللَّهَ مَعَ الصَّابِرِينَ﴾ [الأنفال: ٤٦ آیت]

ترجمه: او صبر وکړئ، بیشکه الله دصبر کونکو سره دی.

۲- او له هغه اسبابو نه چي پریشاني او غمګیني او تشویش لیري کوي، بل هم دخلکو سره په خبرو او کارونو کي ښه رویه کول دي، او دښیګړي* ټول انواع چي خیر او احسان ګڼل کیږي، دهغه په ذریعه الله ﷻ له صالح او بد سړي نه دهغه په اندازه غمونه او پریشانۍ لیري کوي، خو مومن له هغه نه په لویه پیمانه* سره

بـــرخمن* دی، او هغه دا خصوصیت لري چې احسان کول یې په اخلاص او دثواب په امید لرلو سره وي، نو دهغه خیر او ثواب په امید چې دی یې لري ده ته ښیګړه کـــول او خـــیر رسول آسانه وي، او همدا اخلاص او دثـــواب امید له مشکلاتو نه دده دخلاصون سبب وي، الله ﷻ فرمایي: ﴿لاَّ خَيْرَ فِي كَثِيرٍ مِّن نَّجْوَاهُمْ إِلاَّ مَنْ أَمَرَ بِصَدَقَةٍ أَوْ مَعْرُوفٍ أَوْ إِصْلاَحٍ بَيْنَ النَّاسِ وَمَن يَفْعَلْ ذَلِكَ ابْـــتَغَاء مَرْضَـــاتِ اللّهِ فَسَوْفَ نُؤْتِيهِ أَجْرًا عَظِيمًا﴾ [النساء: ۱۱٤ آیت]

ترجمه: ددوی په ډیرو پټو خبرو (مشورو) کې خیر نشـــته، مګـــر دهغه چا چې امر کوي په صدقه ورکولو سره، یا نیک کار سره، یا دخلکو په مینځ کې په روغه* کولـــو ســـره، او څوک چې دا کار دالله درضا لاس ته راوړلـــو لپاره وکړي، نو هغه ته به موږ ژر لوی اجر او ثواب ورکړو.

نو الله ﷻ دا خبره بیان کړه چې څوک دا کارونه

وکړي نو دهغه لپاره دا ټول دخير كارونه دي، او دخير پذريعه سره نور (زيات) خير لاس ته راځي، او شر دفع كـــيږي، او كـــوم مومن چي دثواب په طمع دخير كار كوي نو الله ورته لوی اجر وركوي، چي دهغه له جملي يو دا هم دی چي پريشانۍ او غمونه او بدبختي به ځني* ليري كړي.

## فصل

## [دګټور عمل او علم لاس ته راوړل]

۳- داعصابو دتیت والي* او دزړه دخپګان له وجهې نه دپریشانۍ او تشویش دلیري کولو له اسبابو نه یو هم: دګټــور عمــل کول او مفید* علم لاس ته راوړل دي، ځکــه دا له هغه کار نه دزړه توجه ګرځوي له کوم نه چــي ورتــه پریشاني پیدا شویده، او هغه اسباب ترینه هیروي چي ده ته یي غم او خپګان راوستی دی، نو زړه بــه یي خوشحاله شي، او طبیعت به یي تازه شي، او دا ســبب دمومــن او کافر په مینځ کي مشترک دی، خو مومــن دا خصوصیت لري چي دایمان خاوند دی او په اخلاص او دثواب په طمع سره دعلم زده کړه کوي، او یــا یي بل ته زده کوي، او نیک عمل کوي، که دا کار عــبادت وي نو دعبادت اجر به ورکول کیږي، او که ددنــیوي کارونو یا عاداتو نه وي، نو مومن به یي په ښه نیــت سره، او پدي نیت سره کوي چي دهغه په مرسته

سره دالله ﷻ په طاعت باندې توان او طاقت پيدا کړي، نـــو دا ټول دغمونو او پريشانيو له مينځه وړلو کې قوي او پـــراخ تـــاثير لري. ډير داسې خلک*. شته چې ورته پريشاني يا غم رسيدلی وي، او په مختلفو امراضو مبتلا شـــوی وي، خو ددې ټولو کاميابه علاج او دوا يې دا وه: چې ددې پريشانيو اصلي سبب يې هير کړی، او په کوم بل مهم کار مشغول شوی دی.

او ښايي کوم کار چې کوي هغه داسې کار وي چې زړه ورته مطمئنه وي او شوق ورسره ولري، ځکه پدې صـــورت کـــې په ښه توګه کيدلای شي چې دغه ګټور مقصد يې لاس ته راشي، او الله ډير ښه پوهيږي.

۴- او له هغو اسبابو نه چې پريشاني او تشويش له مينځه وړي دادی: چې خپل ټول فکر او اهتمام پدې را غونډ کړي چې دنن ورځې کار وشي، او دآينده وخت پـــه باره کې فکر ونکړي، او دتير شوي وخت په باره کې پريشاني ښکاره نکړي، او لدې وجهې پيغمبر ﷺ له

«هَمّ» او «حَزَن» نه پناه غوښتي ده[۱]، «حَزَن» دتیرې زماني خفګان ته وايي چې راګرځول یې ممکن نه وي، او «هَمّ» دراتلونکې زماني دتکلیف نه ویرې ته وايي. نو بـــنده باید دنن ورځې سړی وي، خپل ټول کوښش او زیار باید دنن ورځې او دحاضر وخت داصلاح په لاره کـــې پکار واچوي، ځکه چې دې کارونو ته خپله ټوله توجـــه اړول دکارونو دسرته رسیدلو سبب ګرځي، او بـــنده به په هغه سره له غم او پریشانۍ نه ساتلی وي. او پیغمبر ﷺ چې کله کومه دوعا کوي او خپل امت هغه دوعـــا ته رابلي، نو ددې په څنګ کې -دالله نه په مدد غوښتلو او دهغه دفضل په طمع لرلو سره- دهغه کار په باره کې چې دغوښتلو او کیدلو دوعا یې کوي، کوښښ او جَـــدّ وجَهْد* کولو ته، او دهغه کار په باره کې چې دتمـــبولو* دوعا یې کوي، له هغه نه ډډه کولو ته، خپل امـــت رابولي او تشویقوي، ځکه چې دوعا باید دعمل

---

(۱) په هغه حدیث کې چې بخاري او مسلم روایت کړی دی.

ســـره ملګـــرې وي، نو بنده ته ښايي چي دهغه کار په هکلــه* کوښښ وکړي چي په دنيا او آخرت کي ورته ګټـــور وي، او له الله نـــه به په خپل مقصد کي کاميابۍ غـــواړي، او په هغه کي به مدد ترينه غواړي، لکه څنګه چي پيغمبر ﷺ فرمايي: «احرصْ على ما ينفعُكَ واستَعِنْ باللهِ ولا تَعْجزْ، وإذا أصابَكَ شيءٌ فلا تَقُلْ: لو أني فعلتُ كَـذَا كان كذَا وكذا، ولكنْ قلْ: قَدَّرَ اللهُ وما شاءَ فعلَ، فإنَّ (لَوْ) تفتحُ عملَ الشيطانِ».

تـــرجمه: په هغه څه باندي حرص او کوښښ وکړه چـــي تاته ګټه لري، او له الله ﷻ نه مرسته وغواړه، او (دکار په کولو کي) مه عاجزه کيږه، او که درته يو څه (تکليف) ورسيږي، نو داسي مه وايه: چي که مي داسي کـــړي واى، نو داسي به شوي واى، بلکه داسي ووايه: چـــي الله ﷻ (همدا زما) په تقدير کي (مقرر) کړي وه، او څـــه يې چي وغوښتل ويې کړل، ځکه «لَوْ» (يعني: کـــه چيري، کلمه استعمالول او ويل) دشيطان دکارونو

لپاره دروازه* خلاصوي*. [مسلم روايت کړی].

نـــو پيغمبر ﷺ (په پورتني حديث کي) په هر حال کـــي دګټـــورو کارونو په کولو سره، او له الله ﷻ نه مرســـتي غوښتلو سره، امر وکړ، او له عاجزه کيدلو او بـــي فائدې تنبلي کولو نه يې منع وکړه، او د تيرو شوو کـــارونو پـــه هکله د الله ﷻ قضاء وقدر ته تسلميدلو توصيه يې وکړه.

او (پيغمـــبر ﷺ ) کارونه په دوو برخو وويشل: يو هغـــه کارونـــه دي چـــي دهغه په مکمل ډول لاس ته راوړلو، او يا دامکان تر حده پوري لاس ته راوړلو کي، او يا دهغه په تنبولو* کي، او يا دهغه دضرر کمولو کي بنده کولای شي کوښښ او سعي وکړي، نو په دا قسم کـــارونو کي بنده خپل کوښښ او سعيه کوي او دخپل معبود الله ﷻ نه به په هغه کي مدد غواړي.

او بـــل هغـــه کارونه دي چي په هغه کي ددې څه امکـــان نه وي، نو داسي کارونو کي به بنده مطمئن او

(الله ﷻ ته) تسلیم او راضي وي.

او بـــیله کـــوم شکه ددغه اصل مراعات (او دهغه مطـــابق عمل کول به) دپوره خوشحالۍ مینځ راتللو، او دپریشـــانیو او غمونو له مینځه وړلو لپاره لوی او موثر سبب وي.

## فصل

## [دالله جل جلاله پېر یادول او ذکر کول]

۵- دالله جل جلاله زیاته یادونه او ذکر کول دزړه دآراموالی او اطمئنان دلویو اسبابو نه دی، ځکه ذکر کول دزړه په اطمئنان او دسینې دپراخوالي، او غم وپریشانی لیري کولو کې یو عجیب تاثیر لري، الله جل جلاله فرمایي: ﴿أَلاَ بِذِكْرِ اللّهِ تَطْمَئِنُّ الْقُلُوبُ﴾ [الرعد: ۲۸ آیت]

ترجمه: باخبر اوسی چې دالله په یادولو سره زړونه مطمئن کیږي.

نو دالله جل جلاله ذکر -د خپل خصوصیت په وجه، او ثواب ته دامید لرلو په وجه- دهمدې مقصد په لاس ته راوړلو کې لوی اثر لري.

۶- او (بل لدې اسبابو نه) همدارنګه دالله ښکاره او پټ نعمتونه یادول دي، ځکه د(الله جل جلاله) دنعمت پیژندل او دهغه یادولو سره الله جل جلاله (له بنده) نه غم او پریشاني لیري کوي، او بنده هغه شکر ته تشویقوي، کوم چې

دلویو مرتبو او درجو نه شمېرل کېږي، که څه هم بنده دفقر* او مرض په حالت کې وي، او یا نور څه تکلیف سره مخ وي، نو کله چې دالله ﷻ هغه نعمتونه وشمېري چې ده ته یې ورکړيدي، او بیا دهغو تر مینځ او دهغه تکلیف تر مینځ مقایسه وکړي چې ده ته رسېدلی دی، نو وبه ګوري چې دا تکلیف دنعمتونو په مقابل کې هیڅ نسبت نلري.

بلکه بنده که په هغه مصیبتونو چې الله ﷻ دی په هغه مبتلا کړیدی، صبر وکړي او راضي او تسلیم شي، نو هغه به په ده باندي آسانه شي او تکلیف به یې پده باندي لږ شي. او دبنده تأمل او فکر دهغه په اجر او ثواب کې، او دالله ﷻ عبادت، او په هغه باندي صبر کول او راضي کېدل ترخه شیان خوږه وي، او دهغه خوږ اجر یې تریخ صبر ورنه هېروي.

۷- له ټولو نه ګټور شیان پدي هکله* دهغه کار کول دي کوم ته چې پیغمبر ﷺ په صحیح حدیث کې

ارشاد* کړی او خلک* هڅولي دي، او فرمایلي یې دي:
«انظُـــروا إلى مَن هو أسفلَ منكمْ، ولا تنظُروا إلى مَن هو فوقَكمْ، فإنه أَجْدَرُ أنْ لا تزدَرُوا نعمةَ اللهِ عليكمْ».

ترجمه: هغه چا ته وګورئ چې له تاسو نه (په ژوند کـــې) کم او ټیټ وي، او هغه چا ته مه ګورئ چې له تاســـو نه (په ژوند کې) پورته وي، او دا کار ددې لپاره ډیـــر غوره دی چې دهغه نعمتونو سپکاوی ونکړئ چې تاسو ته الله په برخه کړي دي. [بخاري روایت کړیدی]

او دا ځکـــه چـــې که بنده نومړی اصل په پام کې ونیســـي، نو وبه ګوري چې له ډیرو خلګو نه په عافیت او نیکمرغي کې زیات دی، او زیاته روزي* ور په برخه ده، پـــه هـــر حالت کې چې وي، نو له همدې کبله یې پریشـــاني او غم او خپګان له مینځه ځي، او دا چې له خوشـــحالي او خوشـــبختي او دالله دنعمتونو نه له نورو زیات دا سرړی برخمن دی، دا به یې نور هم زیات شي.

او چـــې څومـــره بنده دالله ﷻ دظاهري او باطني،

دیـــني او دنیوي نعمتونو په هکله* زیات فکر* او تأمل* وکړي، نو وبه ګوري چې الله ﷻ ډیرې بښیګړې* ورپه بـــرخه کـــړي، او ډیر تکلیفونه او شرونه یې ځني دفع کړیـــدي، نو بیله کوم شکه دا (فکر او تأمل) به لده نه ډیـــرې پریشانۍ او غمونه لیرې کړي، او خوشحالي او نیکمرغي به ورته راولي.

## فصل

## [بتیرو غمونو او تکلیفونو هیرول، او له آینده څخه ویره نه لرل]

۸- لـــه هغو اسبابو نه چې خوشحالي راولي، او غم وپریشاني له مینځه وړي بل هم دادی: چې دهغو اسبابو لـــه میـــنځه وړلو کې سعي وکړي چې غمونه را پیدا کـــوي، او دهغو اسبابو په لاس ته راوړلو کې کوښښ وکـــړي چـــې دخوشحالۍ سبب ګرځي، او دا چې تیر شوي تکلیفونه او غمونه به هیره وي، کوم چې له مینځه وړل یې ممکن ندي، او پدې پوهیدل چې خپل ذهن او فکـــر* په هغه سره مشغوله کول بې فائدې او نا ممکن کار، او حماقت* او لیونتوب دی، نو کوښښ به کوي چې خپل زړه او ذهن دداسې کارونو په باره کې له فکر کولـــو نـــه وساتي، او په آینده* کې لدې ویرې نه چې فقـــر*، پریشـــانی، او یا غیر له هغه نه نور تکلیفونه چې ګمان کوي ورته پیښ به شي ، لداسې تشویش* نه هغه

لیري وساتي.

نو بنده باید پوه شي چي په آینده کي دخیر او شر، او دده دخوښـــي کارونـــه، او دخوښي خلاف غمجن کارونه پیښیدل ټول مجهول او نامعلوم دي، او دا ټول دعـــزت او حکمت والا ذات الله ﷻ په لاس کي دي، او دبـــنده په لاس کي دهغه نه هیڅ نشته، مګر دا چي دخـــیر دلاس تـــه راوړلو لپاره، او دشر دفع کولو لپاره یـــوازي خپل (توان* او وسعي* سره) کوښښ* وکړي، او پـــدي خبره پوه شي چي که خپل ذهن دآینده په باره کي له تشویش کولو نه وساتي، او په خپل خدای باندي دکـــارونو داصلاح په باره* کي توکل وکړي، او دزړه اطمیـــنان یي په الله سره وي، نو کله چي داسي وکړي زړه بـــه یـــي آرام او مطمئن شي، او کارونه به یي جوړ شي، او تشویش او غم به یي له مینځه لاړ شي.

۹- او دخپلي آیندې دجوړولو په باره کي له ټولو نه ګټـــوره هغـــه دوعا ده چي پیغمبر ﷺ به کوله (او هغه

داده): «اللـــهمَّ أصْلِحْ لي دِيني الذي هو عِصْمَةُ أمْري، وأصلِحْ لي دنيايَ التي فيها مَعَاشي، وأصلِحْ لِي آخِرَتِي التي إلَيْها مَعادي، واجْعَلْ الحياةَ زِيادَةً لي في كلِّ خيرٍ، والموت راحةً لي مِنْ كلِّ شرٍّ».

تــرجمه: ای الله ته ما ته زما دین اصلاح کړې په کــوم کې چې زما دکار سموالی دی، او زما دنیا سمه کړې په کوم کې چې زما ژوند دی، او آخرت مې سم کــړې و کوم ته چې زما بېرته ورتګ دی، ژوند مې د ټولو خیرونو دزیاتوالي سبب وګرځوې، او مرګ مې له هــر شر نه دخوندي کیدلو سبب وګرځوې.[مسلم روایت کړی].

او همدارنګــه دا دوعـــا: «اللّهمَّ رحمَتَكَ أرجُو فلا تَكلْني إلى نفْسي طَرْفَةَ عينٍ، وأصْلِحْ لي شَأْني كُلَّهُ، لا إلهَ إلاَّ أنتَ».

ترجمه: ای الله ستا درحمت په امید یم، نو دسترګې درَپ په انــدازه هم وخپل نَفس ته مه سپاره، زما ټول

کارونـــه ســـم کړې، بیله تا نه بل دعبادت وړ* خدای نشته. [ابو داود په صحیح سند سره روایت کړی دی].

نـــو کله چې بنده دا دوعا په اخلاص، او دزړه له کومـــې پـــه ښه نیت سره ووایې، په کومه کې چې یې ددیـــنې او دنـــیوي آینده* ښیګړه* ده، او دهغه دعملې کولو لپاره کوښښ وکړي، نو الله ﷻ به هغه څه ورلره ورکـــړي له کوم لپاره چې یې دوعا او طمع کړې وي، او دهغـــه لپاره یې عمل کړی وي، او غم او پریشانۍ به یې په خوشحالۍ او نیکمرغۍ سره بدل کړي.

## فصل

## [دمصیبت په وخت کې باید دهغه نه بدترین حالت په نظر کې ونیسي او بیا یې دکمولو کوښښ وکړي]

۱۰- دمصـــیبتونو په وخت کې دتشویش او غمونو کمولـــو له ګټــورو اسبابو نه بل دادی: چې دمصیبتونو دتأثیر په کمولو او سپکولو کې کوښښ* وکړي، او هغه داســـي چـــي دمصیبت او تکلیف په وخت کې دهغه بدتـــرین حالت په نظر کې ونیسي (او ځان ورته چمتو کـــړي)، او دهغه دمقاومت لپاره ملا وتړي، او بیا چې څومره ممکن وي په هماغه اندازه دي دکمولو کوښښ وکـــړي، نـــو پـــدي مقاومت او بهره مند کوښښ یې پریشـــانۍ او غمونه ورکیږي، او دهغه په عوض کې به دخـــیر په لاس ته راوړلو او دشر او ضرر دفع کولو کې څومره چې ورته آسانه وي هڅه* وکړي.

نـــو کلـــه چې پرې دویرې حالات، او دمرضونو حـــالات، او فقر* راشي، او یا یې دخوښې هغه مختلف

شیان چي غواړي لاس ته یي راوړي، لاس ته رانشي، نو دا ټــول کارونه به په ډیر اطمینان او په پوره* زړه سره مــني، بلکه ځان به لدي نه سختو تکلیفونو زغمولو* ته تــیاروي*، ځکه دتکلیفونو زغملو ته ځان تیارول داسي تکلــیفونه انســـان تــه آسانه کوي، او سختي ورباندي کموي، خصوصاً که خپل ځان دوسعي سره سم دهغه په دفع کولو کي مشغوله کړي، نو زړه به یي آرام شي، او په داسي مفید کار به بوخت شي چي دمصیبتونو په باره کــي له فکر او اندیښني* کولو څخه به یي وساتي، او هغــه ته به دتکلیفونو په مقابل کي دمقاومت کولو تازه طاقت ورکړي، او لدي (ټولو) سره به یي توکل او تکیه پر الله ﷻ باندي وي.

نــو شــک نشــته چــي دداسي کارونو لویه ګټه دخوشحالۍ حاصلول او دسیني پراخوالی دی، علاوه* له هغــه ثواب او اجر څخه چي بنده یي په دنیا او آخرت کــي طمع او امید لري. او دا کار په تجربه سره ثابت

شـــویدی، او دهغو کسانو مثالونه ډیر زیات دي چې دا کار یې تجربه کړیدی.

## فصل

## [دقوي زړه لرل او له بیځایه خیالاتو او افکارو نه اندیښنه نکول]

۱۱- دزړه دسختو مرضونو، او همدارنګه دبدني مرضونو دغټو علاجونو څخه یوه وسیله: دقوي زړه لرل او له بیځایه او غیر حقیقي خیالاتو نه چي ناوړه افکار مینځ ته راوړي اندیښنه نه کول دي؛ ځکه انسان چي کله خپلو خیالاتو ته تسلیم شي، او زړه یې له ویري راتللو نه، او په مرضونو اخته کیدلو نه، او یا نورو داسي شیانو نه لکه قهر، غضب، او له دردَوُنکو حالاتو، او تکلیفونو راتللو، او دمرغوبو* شیانو دلاسه ورکولو دتشویش نه متأثر شي، نو هغه به یې په داسي غمونو او اندیښنو او روحي او جسمي مرضونو، او داعصابو له لاسه ورکولو سره مبتلا کړي، چي دهغه بد آثار ټولو ته ښکاره او ظاهره دي.

۱۲- نو چي کله بنده په الله ﷻ باندي تکیه او

اعـــتماد او توکـــل وکړي، او بېځایه فکرونو، او بدو اندېښنو ته تسلیم نشي، او په الله باندې تکیه وکړي، او دفضـــل او رحمت امید يې ولري، نو لده نه به اندېښني او غمونه لیري شي، او له ډېرو جسمي او قلبي مرضونو نه به خلاص شي، او داسي دزړه قوت او خوشحالي او آرامي به ورته پیدا شي چي له هغه نه تعبیر کول به ګرانه خبره وي.

څومـــره زیات روغتونونه* د وَهْمِي* او غیر حقیقي او فاسده خیالاتو او اندیښنو له مریضانو نه ډکي دي، او څومـــره زیـــات دقوي زړونو خاوندان دداسي حالاتو قـــرباني شوي دي، او دکمزوره زړونو خاوندان خو لا پرېږده، او څومره زیات خلک دداسي حالاتو له وجهي په لیونتوب او بیعقلۍ مبتلا شویدي.

او روغ سړی هغه دی چي الله ﷻ ورته صحت او روغتیا ورکړي وي، او ددې توفیق يې ورکړی وي چي دزړه دقوت هغه ګټور اسباب لاس ته راوړي، کوم چي

لده نه تشویشونه او اندیښني دفع کوي، الله ﷻ فرمايي:
﴿وَمَن يَتَوَكَّلْ عَلَى اللَّهِ فَهُوَ حَسْبُهُ﴾ [الطلاق: ۳ آیت]
ترجمه: او څوک چې په الله ﷻ باندي توکل او تکیه وکړي، نو هغه ورلره بس او کافی دی. یعني (الله ﷻ دانسان) ددنیا او آخرت دټولو کارونو کولو لپاره بس او کافی دی.

نو څوک چې په الله ﷻ باندي توکل کوي، هغه به دداسي قوي زړه خاوند وي چې بیځایه افکار به پري تأثیر نه کوي، او نه به يي وهمونه او حوادث پریشانه کوي، ځکه هغه ښه پوهیږي چې پداسي کارونو سره اندیښنه کول او پریشانه کیدل دزړه دکمزورۍ، او دبیځایه او غیر حقیقي ویري او ډار له وجهي څخه وي، او لدي سره دا ایمان لري چې الله ﷻ دهغه چا لپاره پوره او کافي دی چې په هغه باندي توکل اوتکیه لري، نو په الله ﷻ يي پروسه او په وعده باندي يي زړه پوړه* وي، نو له همدي وجهي نه يي غم او پریشاني له مینځه

ځـــي، او مشـــکل يې په آسانۍ او راحت، او غم يې په خوشحالۍ، او ویره يې په آرامۍ بدلیږي.

نـــو له الله ﷻ نـــه سوال کوو چې موږ ته په خپل فضـــل سره عافیت، دزړه قوت، ثبات*، او پوره توکل را پـــه برخه کړي، دکوم خاوندانو ته چې الله ﷻ دټولو خیرونو ورکولو، او دټولو شر او تکلیف تمبولو* وعده کړیده.

## فصل

## [دوې غټې فائدې]

۱۳- د پیغمبر ﷺ پدې فرمان کې چې فرمايي: «لا يَفْـــرَكْ مؤمـــنٌ مؤمنةً إنْ كَرِهَ منها خُلُقاً رضيَ منها خُلقاً آخرَ».

ترجمه: يو مسلمان سړی دې يوه مسلمانه ښځه بده نه ګڼي، که يې يو خوی خوښ نشي، نو بل خوی به يې خوښ شي.

پدې کې دوې فائدې دي:

**اوله فائده:**

پـــدې کـــې لارښودنـــه ده چې دښځې، قريب*، ملګـــري، کارګـــر، او هـــر هغه چا سره چې رابطه او اړيکـــې* لـــري، څرنګه معامله وکړې شي، او دا چې ښايي* خپل ځان ته دا قناعت ورکړې چې خامخا به په يـــو چا کې عيب او نقصان، او يا داسې خوی وي چې ستا نه خوښيږي، نو چې کله داسې يو شی وګورې، نو

دا له هغه محبت او میني سره مقایسه کړه کومه چي ته یـــي بـــايد دهغه سره درابطي او اړيکي په اساس له هغه سره په ټينګه ولري، او هغه ښه صفات، او نيک خاص او عام مقصدونه در پياد کړه کوم چي پده کي شته، او پدي توګه چي په عيبونو باندي سترګي پټي شي او نيک صـــفات په نظر کي ونيول شي، ملګرتيا او اړيکي دوام داره پاتي کيږي، او تا ته به په هغه کي پوره اطمينان او راحت حاصل شي.

## دوهمه فائده:

دتشويش او انديښني له مينځه تلل، او (دزړه) صفا پـــاتي کيدل، او دفرضي او مستحبو حقوقو دوامداره پر ځـــاى کـــول، او ددواړو طـــرفونو تر مينځ داطمينان حاصيليدل.

او څوک چي د پيغمبر ﷺ پدې ارشاد او لارښودنه بـــاندي عمل ونکړي، بلکه دهغه مخالف عمل وکړي، يعـــني عيبونو ته وګوري او نيک صفتونه پټ کړي، نو

هغه به خامخا دتشویش سره مخامخ کیږي، او خامخا* بـــه دده او دمقابل طرف تر مینځ محبت خراب شي، او ډیـــر هغـــه حقوق به بیځایه شي کوم چې ساتل یې په دواړو لازمي کار دی.

او ډیـــر دلـــوړ همت خاوندان شته چې دمصیبتونو دراتګ، او پریشانیو په وخت کې خپلو ځانونو ته دصبر او اطمینان تلقین* ورکوي، خو دساده او آسانه کارونو په وجه بیا تشویش او اندیښنه کوي، او (دزړه) صفائي یـــې لـــه مینځه ځي، او دا ځکه چې دوی خپل ځانونه دلویو کارونو په مقابل کې چمتو کړي، او دوړو کارونو پـــه مقابل کې یې هسې پریښې دي، چې دا کار ددوی په ضرر تمام شوی، او ددوی آرامي یې له مینځه وړیده.

نـــو دعزم او ارادې خاوند خپل ځان دلویو او وړو کارونو (دواړو) په مقابل کې چمتو کوي، او له الله ﷻ نه دهغه لپاره دمدد او مرستې غوښتنه کوي، او دا سوال ځـــنې کـــوي چې دسترګې درپ په اندازه یې هم خپل

نفس ته پرې نږدي، نو پدې ډول به هغه ته واړه کارونه داسې آسانه شي، لکه څنګه چې لوی کارونه ورته آسانه وو، او همیشه به خاطر جمع او دآرام زړه خاوند وي.

## فصل

## [خپل لنډ ژوند باید غمونو او پریشانیو ته ونه سپارل شي]

۱۴- دعقل خاوند پدي ښه پوهیږي چي حقیقي ژوند یوازي دنیکمرغۍ او آرامۍ ژوند دی، او هغه هم ډیر لنډ، نو هغه ته نه ښایي چي هغه په غم او اندیښنو سره نور هم لنډ کړي، ځکه دا دصحیح ژوند له مفهوم څخه خلاف کار دی، نو ډیر کوښښ به کوي چي دژوند لویه برخه یې دغمونو او پریشانیو ښکار نشي. او پدي کي نیک او بد سړي په یو شانته دی، خو مومن ته ددي کار په تحقیق کي غټه برخه او ښه نصیب دی، او په هغه کي یې ددنیا او آخرت ګټي دي.

۱۵- او کله چي ورته څه تکلیف ورسیږي، او یا یې له رسیدلو نه ویره وي، نو دهغه دنیوي او دیني نعمتونو تر مینځ چي ورپه برخه دي، او دهغه تکلیف تر مینځ چي ورته رسیدلی وي مقایسه وکړي، نو وبه

ګوري چې دنعمتونو شمیر ډیر زیات دی، او ورته رسیدلي تکلیفونه دهغه په مقابل کي هیڅ هم ندي.

او همدارنګه که دهغه ضرر په مینځ کي چي له واقع کیدلو نه یې ویره لري، او دهغه نه په سلامتیا* کي دزیاتو احتمالاتو تر مینځ مقایسه وکړي، نو پري به نږدي چي ضعیف او کمزوری احتمال په غټو او قوي احتمالاتو غالب شي، چي پدي توګه به یې غم او تشویش لیري شي، او باید دمصیبت راتلو لپاره له ټولو نه لوی احتمال په نظر کي ونیسي، او هغه ته ځان چمتو کړي، او که واقع شي، نو دواقع شوی ضرر په لیري کولو او کمولو کي، او هغه چي لا ندی واقع شوی، او ددي احتمال وي چي واقع به شي، دهغه په دفع کولو کي کوښښ وکړي.

۱۶- او له مفیدو او ګټورو کارونو څخه بل دادی: کوم ضرر چي تا ته خلګ رسوي بالخصوص په بدو خبرو سره، نو هغه په حقیقت کي تا ته هیڅ ضرر نه

رسوي، بلکه هغوی ته ضرر دی، مګر تا ته به هله ضرر لـــري چي خپل ذهن دهغه په باره کي مشغوله کړې، او هغــه تــه اجازه ورکړي چي ستا احساساتو ته صدمه ورسوي، نو پدي صورت کي به تا ته هم ضرر رسوي، لکـــه څنګه چي يي خپلو خاوندانو ته رسوي، خو که ته هغــه تــه څــه پام* او سوچ ونکړي، نو هيڅ ضرر به درنکړي.

۱۷- پوه شه چي ستا ژوند ستا دافکارو او خيالاتو تابع دی، که دي فکرونه او سوچونه په هغو کارونو کي وي چـــي تاتـــه په دين يا دنيا کي نفع او فائده لري، نو ژوند به دي نيکمرغه او خوشحاله وي، او که داسي نه وي، نو نتيجه به يي هم ددي خلاف وي.

۱۸- دغم او پريشانۍ ددفع کولو بله ګټوره وسيله داده: چـــي خـــپل ځان ته قناعت ورکړي چي شکر او ثـــواب بـــه يوازي له الله ﷻ څخه غواړې، نو چي کله لداســـي چا سره ښه وکړي چي هغه په تا حق لري او يا

هغــــه چې نه يې لري، نو ته پدي پوه شه چې ستا دغه معامله په حقيقت کې له الله ﷻ سره ده، نو نو چا سره چې دي ښه وکړه، دهغه دشکر امید مه لره، لکه څنګه چـــې الله ﷻ دخـــپلو خاصو بندګانو په باره کې داسې فرمايي: ﴿إِنَّمَا نُطْعِمُكُمْ لِوَجْهِ اللَّهِ لاَ نُرِيدُ مِنكُمْ جَزَاء وَلاَ شُكُورًا﴾ [الإنسان: ۹ آيت]

تـــرجمه: موږ یوازې دالله ﷻ لپاره تاسو ته خواړه درکـــوو، له تاســـو نـــه ادا ینه (بدله) او شکر (مننه) نه غواړو.

او دا کـــار خصوصاً داهل او عيال*، او له هغه چا ســـره چـــې قوي رابطه ورسره لري، معامله کولو کې زيات اهميت لري، نو کله چې ته له هغوی نه کوم شر او تکليف لیرې کړې، نو دوی به هم په راحت شي او ته به هم آرام شي.

او داطميـــنان حاصلولو له اسبابو نه بل هم دادی: چې ښه کارونه دزړه له کومې او په شوق سره وشي، نه

په تَکَلُّف* سره کوم چې ستا دتشویش سبب ګرځي، او لــه خیر نه دي به برخې کوي، ځکه چې کړه لاره دي انتخاب کړي ده، او دحکمت تقاضا داده چې دپریشانه کونکو کارونو نه خوشحالونکي کارونه لاس ته راوړې، او پدي توګه سره به دلذتونو خوند نور هم زيات شي، او پریشانۍ به له مینځه لاړي شي.

۱۹- مفید او ګټور کارونه خپلي مخي ته کښېږده او پــه عمــلي کولو کي يې کوښښ وکړه، او دضرو کارونو ته نظر مه کوه، تر څو دپریشانۍ او غم له اسبابو نه ځان وساتي، او له راحت او اطمینان نه کار واخله او خپله توجه ومهمو کارونو ته واړوه.

۲۰- له مفیدو کارونو څخه بل دادی: چې کارونه همدا اوس اجراء کړي، او دآینده کارونو ته ځان فارغه* کړي، ځکه کارونه که په خپل وخت کي ونشي نو نور پخوانــي کارونه به درته راټول شي، او آینده کارونه به هــم ورسره یوځای شي، نو سرته رسول به يې سخت شي، خو که هر کار په خپل وخت کي وکړې، نو آینده کارونو لپاره به په ښه توګه دفکر کولو، او په قوت سره

دکار کولو وخت ولري.

۲۱- او ښايي چې دمفيدو کارونو نه لهِ تولو نه مهم مهـــم کارونـــه اختيار کړي، او (خصوصاً) هغه کارونه انـــتخاب کـــړي چې ستا زړه ورته کيږي او شوق دي ورتـــه زيـــات وي، ځکه که داسي نه وي نو دستړيا او ستوماني او انديښني سره به مخ شي. او بيا دنومړي کار په کولو کي له سالم فکر (ښه سوچ) او مشوري نه کار واخلـــه، ځکه څوک چې مشوره کوي هغه نه پښيمانه* کـــيږي. او کوم کار چې کول يې غواړي دهغه په باره کـــي ښـــه په غور او دقت سره فکر وکړه، که ګټه او مصلحت دي پکښي وليد، او دکولو عزم او اراده دي وکړه، نو بيا په الله ﷻ توکل وکړه، په بي شکه چې الله توکل کونکي خوښوي.

والحمد لله رب العالمين.

وصلى الله تعالى على سيدنا محمد وعلى آله وصحبه وسلم.

# دلهجي داختلاف په صورت کي یوه معنی لرونکي کلمات چي په کتاب کي راغلي دي

| کلمة | معنـی |
|---|---|
| اړه | ارتباط، هکله |
| اړیکي | رشته، علاقه، رابطه |
| اداَینه | عوض ورکول |
| آرزو | امید، طمع، توقع |
| آینده | مستقبل |
| ارشاد | رهنمایي، لاربنوونه |
| استقامت | ثبات، ټیکوالی، استواري |
| اصول | اساسات، بنسټونه |
| اندیښنه | سوچ، فکر |
| اندیښني | پریشانی، سوچونه |
| اهل وعیال | ښځي او بچي |
| آینده | راتلونکي زمانه، مستقبل |

| معنی | کلمة |
|---|---|
| توجه | پام |
| اساسات، اصول | بنسټونه |
| په حقله | په باره |
| حصه دار، لرونکی | برخمن |
| مطمئن | پوره |
| اندازه، مقدار | پیمانه |
| فکر، سوچ | تأمل |
| بیځایه سوچ، ناقراري | تشویش |
| کتاب لیکنه، تالیف | تصنیف |
| بیله شوقه، په زور سره | تکلف |
| نصیحت کونه، قناعت ورکول | تلقین |
| دفع کول، لیرې کول | تمبول |
| طاقت | توان |
| آماده کول، چمتو کول | تیارول |

| کلمه | معنی |
|---|---|
| تیت والي | پریشانوالی، ګډوډیدنه |
| ثبات | ثابت قدم والی، کلکوالی |
| جَدّ وجَهْد | کوښښ، هڅه کول |
| چلند | رفتار، ګزاره، تعامل |
| ځانګړتیا | خصوصیت، میزه |
| ځني | وُر نه، له هغه نه |
| حماقت | بې عقلي |
| خامخا | خا ما خه |
| خپګان | خواشیني، اندیښنه |
| څښتن | خاوند، مالک |
| خلاصوي | کولاووي، بیرته کوي، پرانیزي |
| خلک | خلق |
| خواشیني | خفګان، خوابدي |

| معنی | کلمة |
|---|---|
| وَر | دروازه |
| رزق، خوراک څښاک | روزي |
| شفاخانه، هسپتال | روغتون |
| جوړه، صلحه | روغه |
| برداشت کول، تحمل کول | زغمل |
| کوښښ، وسعه | سعي |
| بچ پاتې کیدل | سلامتیا |
| تشکر، شکریه، مننه | شکر |
| باید، غوره ده | ښایي |
| ښه عمل، ښه صفت، ښه خوی | ښیګړه |
| لوڅ، بربنډ | عاري |
| سر بیره له هغه، سوا له هغه | علاوه له هغه |
| بیکار | فارغه |

| کلمة | معنی |
|---|---|
| فقر | غریبي |
| فکر | سوچ، اندیښنه |
| قریب | خپل، دوست، رشته دار |
| ګټور | مفید |
| کړنلاره | طرز العمل، طریقه |
| کوښښ | کوشش، هڅه |
| لاري | لیاري |
| مرغوب شیان | دخوښي شیان، محبوب شیان |
| مستقبل | آینده |
| مفید | فائده ناک |
| مهیا | تیار، اماده |
| نغښتې | پیچلې، پرته |
| نیک | ښه، غوره |

| کلمه | معنی |
| --- | --- |
| هڅه | کوښښ |
| هکله | باره کې، حقله |
| وړ | لائق، مستحق |
| وسعه | طاقت، قدرت |
| واقعه | پېښه، حادثه |
| وهمي | غیر واقعي، خیالي |

## د موضوعاتو فهرست

**موضوع** **صفحه**

# الوسائل المفيدة للحياة السعيدة

تأليف

الشيخ عبد الرحمن بن ناصر السعدي

رحمه الله تعالى

بلغة «البشتو»

ترجمة

عبد النافع زلال

وكالة المطبوعات والبحث العلمي

وزارة الشؤون الإسلامية والدعوة والإرشاد

المملكة العربية السعودية

١٤٣٩ هـ